



زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د(اختر، کالي، مبارکي او خوشالي) کلمې په تورو واړوي بیادې هغه یوبل ته وښيي او یو دبل غلطۍ دې سمې کړي. ورکړل شوی تمرین دې زده کوونکي په کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي.










- ښوونکی دې لوست په پوښتنو پیل کړي. او زیار دې وباسي چې ټولو زده کوونکوته په ځواب ورکولو کې برخه ورکړي. بیادې ښوونکی داختر ددودونو په هکله معلومات ورکړي او د(اختر) دلوست متن دې هم تدریس کړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي چې په پاسني تمرین کې دې نیمګړې کلمې په بشپړو کلمو واړوي.



کورنۍ دنده



اختر

په اختر کې یوبل ته مبارکي وایو.




ددې لوست هدف زده کوونکو ته دهېواد اودهېواد پالنې په هکله معلومات ورکول دي.

**پوښتنې:**

۱- آیا تاسې سیند لیدلی دی؟ او که مو لیدلی دی چېرې؟

۲- زموږ په هېواد کې څه څه شیان پیداکیږي؟

۳- تاسې په خپل وطن کې څه شی خوښیږي؟

۴- موږ خپل هېواد ته څه ګټې رسولی شو؟

# زموږ هېواد

زموږهېواد ډېرښکلی دی. ډېرځنګلونه اولوی - لوی غرونه لري. په ښکلو دروکې یې سیندونه بهیږي او خاوره یې دغلو دانو له پاره زیاته ګټوره ده. دا هېواد په زړه پورې کانونه هم لري. زموږهېواد دیو ګډه اوشریک کور په شان دی. نوراځئ چې خپل هېواد ودان او آباد کړو.

آباد دې وي زموږ ګران افغانستان !





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې د(هېواد، ځنګلونه اوغرونه) کلمې په ځپو واړوي.
- زده کوونکي دې دلوست په پای کې ، لاندې تمرين په کور کې په خپلو کتابچو کې کاروکړي .








- ښوونکی دې (زموږ هېواد) لوست تدريس کړي او زده کوونکو ته دې دافغانستان ځايونو، سيندونو، غرونو او افغاني ټولنې په هکله معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي چې لاندې تمرين په خپلو کتابچو کې وليکي او يوبل ته دې هغه وروښيي.






هېواد

زموږ هېواد ډېر ښکلی دی.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي په دې پوه شي چې بیرغ زموږ دیووالي نښه ده.

پوښتنې:

۱- آیا تاسو بیرغ لیدلی دی؟ که مو لیدلی وي څو رنګه یې درلودل؟

۲- زموږ بیرغ څو رنګه لري؟

۳- زموږ بیرغ دڅه شي نښه ده؟

# بیرغ

زموږ بیرغ درې رنګونه لري: تور، ســور اوشین. بیرغ زموږ دیووالي نښه ده.

رپانده دې وي زموږ ملي بیرغ!

سرلوړي دې وي دافغانستان خلک!




- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونوکې د(بيرغ، شين، ملي او افغانستان) کلمې پــه خپــو واړوي. او لاندې تمرين دې په کور کې کار وکړي.









- ښوونکی دې دبيرغ درنګونو په هکله زده کوونکو ته معلومات ورکړي. او دبيرغ لوست دې تدريس کړي.ښوونکی دې زده کوونکو ته په دې باب داچي زموږ بيرغ زموږ ديوالي نښه ده څرګندونې ورکړي.

- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي چې لاندې تمرين پخپلو کتابچو کې وليکي او يوبل ته يې ورروښيي.






بيرغ

بيرغ زموږ ديوالي نښه ده.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي زموږ دارزښت وړ دودونه لویه جرګه وپېژني.

پوښتنې:

۱- تاسې دلویې جرګې په هکله څه پوهېږئ؟

۲- تاسې پخپلو مینځو کې څه ډول پرېکړې کوئ؟

۳- کله چې تاسې تصمیم نیسئ دنورو سره مشوره کوئ؟

# لویه جرګه

لویه جرګه زموږ یو پخوانی دود دی.

دلویې جرګې غږ دخلکو غږ دی.

په لویه جرګه کې دخلکو ستونزې اواریږي.

دلویې جرګې پرېکړوته هرڅوک درناوی کوي او هغه مني.





- زده کوونکي دې په ټولګي کې دټولګي دپاکولو په هکله غونډه وکړي او دهغې په هکله دې پرېکړه وکړي چې دټولو زده کوونکو په خوښه وي.
- زده کوونکي دې له نیمګړو کلمو څخه چې د(لویه) په کلمې سره پیل کېږي بشپړه کلمه جوړه کړي.




- زده کوونکي دې دلمن لیک تمرین پخپلو کتابچو کې کې ولیکي او یوبل ته دې ورروښیي.







- ښوونکی دې دلویې جرګې په هکله چې زموږ یو پخوانی دود دی زده کوونکو ته معلومات ورکړي. ښوونکی دې یوه ستونزه اوڅو تنه زده کوونکي وټاکي چې دټولګي په مخ کې په ټاکل شوې ستونزې باندې خبرې وکړي دمثال په توګه : یوکتاب دی اوڅلور زده کوونکي یې غوښتنه کوي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي چې لاندې تمرین دې پخپلو کتابچو کې ولیکي اویوبل ته یې ورروښیي.






جرګه

دلویې جرګې غږ دخلکو غږ دی.



ددې لوست هدف دادې چې زده کوونکي دسولې او آزادۍ په اړتيا پوه شي.

پوښتنې:

۱- په پورتني رسم کې څه وينئ؟

۲- تاسې نور کوم الوتونکي مرغان ليدلي دي؟

۳- تاسې په خپل کور کې الوتونکي مرغان ساتئ؟

# کوتره

کاشکې!زه کوتره وای
غـــاړه مې کمره وای

ناستـــه په ډبره وای
ډېـره تېز نظـره وای

ښېښې مې دسروزرو وای
ژوند مې بې خطره وای





- زده کوونکي دې دټولګي په مخ کې نورې سندرې، ترانې او نظمونــه چــې زده یــې وي ټولګیوالوته ووایي.
- زده کوونکي دې لاندې تمرین په کور کې پخپلو کتابچو کې کار ولیکي او ووایي.










- ښوونکی دې دکوترې نظم زده کوونکو ته ور زده کړي او دا دې ورپه ګوته کړي چــې کوتره دسولې او آزادۍ سمبول دی.
- ښوونکی دې زیار وباسي چې زده کوونکي د آزادۍ په ارزښت پوه شي.






کوتره

کاشکې! ژوند مې بې خطره وای.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي دهمکارۍ په اهمیت پوه شي او دهغې کلمې لوستل او لیکل زده کړي.

پوښتنې:

۱ - آیا تاسې له چاسره مرسته کړې ده؟

۲ - کله چې تاسو مرستې ته اړتیا درلوده چا مرسته درسره کړې ده؟

۳ - تاسې دکور په کوم کارکې مرسته کوئ؟

# همکاري

ټول ماشومان یو دبل همکارۍ ته اړتیا لري.

دوی په هر کارکې باید یوبل ته لاس ورکړي.

ځکه په ګډه هلو ځلو کې هرکار په ښه شان سرته رسیږي. ماشومان په ګډه کار کې یودبل

څخه زده کړه کوي.





-زده کوونکي دې د(ت) دتورې غږ، په يوازې او ګروپي توګه ادا کړي.

- زده کوونکي دې د(تله، توتيا، توتان اوتول) دمخکښې پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر باندې کار وکړي.

- زده کوونکي دې دلاندې تمرين له نيمګړو کلمو څخه چې په (تو،تا) سره پيل شوي دي بشپړې کلمې جوړې کړي.










- ښوونکی دې لوست په پوښتنو پيل کړي اوزده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې تبصرې وکړي. وروسته دې ښوونکی په رسمونو باندې پوره رڼا واچوي.

- ښوونکي دې بيا د(ت) دتورې نوم، غږ، بڼه او ليکل له زده کوونکو سره تکرار کړي. او دلوست دهدف له مخې دې د(ت) دتورې متن تدريس کړي او ښوونکی به په هر لوست کې دا په پام کې ونيسي، ترڅو چې زده کوونکو نوی لوست نه وي زده کړی بل لوست دې نه پيل کوي.

- ښوونکي دې دهغه رسمونو په کلمو کې، چې په (ت) پيل شوي دي، د(ت) تورې زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي او دوی ته د ې لارښوونه وکړي چې ددرس په پای کې ورکړل شوی تمرين په کور کې کار کړي.



کرښې دنده



تـ ـتـ ـت ت




- زده کوونکي دې په څو ګروپونو وویشل شي او دوی دې دغه شیانو ته چې ورسره آشنا دي لکه (کمربند، رسی، قلم او لښته) کتارونه جوړ کړي او په پای کې دې وګوري چې دچا کتار اوږد دی.
- زده کوونکي دې دغه دبشپړوکلمودجوړولو تمرین پخپلو کتابچو کې ولیکي او دخپلوګروپو غړوته دې ورونښيي.

زده کوونکي دې په کور کې دلن لیک تمرین ولیکي او ولولي









- ښوونکی دې دهمکارۍ دلوست متن تدریس کړي او زده کوونکو ته دې له یوبل سره دهمکارۍ داړتیا او اهمیت په باب معلومات ورکړي.



کورنۍ دنده



همکاري

هرانسان دبل مرستې اوهمکارۍ ته اړتیا لري.



ددې لوست هدف دادئ چې: ۱- زده کوونکي دانسانانو په برابرئ پوه شي.
۲- په مساواتو او داچې ټول انسانان یو شان دي هم پوه کړل شي.

پوښتنې:

۱- آیا یو انسان دبل انسان سره توپیر لري؟

۲- ولې ټول انسانان دعزت وړ دي؟

۳- ښه انسان څوک دی؟

# انسانیت

ټول انسانان یوشان پیدا شــوي دي. هــر انسان عزت لري. تور په سپین اوسپین په تــور، لوړوالی نه لري. خو هغه انسان تر نــورو ښــه دی، چې نېکخویه وي ، ښه کارونه وکــړئ او نورو ته یې ګټه ورسوئ.





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې ددغه چوکاټ ورته کلمې یوه له بلې سره ونښلوي.بیادې دلاندې نیمګړیو کلمو څخه بشپړې کلمې جوړې او بوېل ته دې وروښيي.

| | |
|---|---|
| انسان | عزت |
| عزت | انسانیت |
| ټول | پوښان |
| پوښان | ټول |
| انسانیت | انسان |








- ښوونکی دې دانسانیت دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي . زده کوونکو تــه دې دانسانانو ترمنځ دمساواتو او برابری او دښه انسان دصفاتوپه هکلــه معلومـــات او مثالونــه ورکړي.

- ښوونکی دې زده کوونکي ته ورپه یاد کړي چې لاندیني تمرین په کورکې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په لوړ آواز یې ولولي.

کورنی دنده



انسانیت

هر انسان عزت لري.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي په ټولنيز ژوند کې د(زغم) په ارزښت او اهميت ښه پوه شي.

پوښتنې:

۱- آيا تاسې کوم وخت له چا سره شخړه يا لانجه کړې ده؟

۲- پرته له شخړې څخه آيا دتاسې لانجه په بله کومه لاره نه حل کېدله؟

۳- په کوم وخت کې سړی دصبر او زغم څخه کار واخلي؟

# زغم

کله -کله ماشومان په خپلو منځو کې لانجې کوي. ماشومانو ته په کار دي چې دشخړو په وخت کې دزغم اوخبرو کولو څخه کار واخلي. او دځان څخه دا پوښتنه وکړي چې آيا دالانجه په شخړه ارزي اوکه نه؟ ځکه چې شخړه کول ښې اړيکې تاواني کوي او ملګري توب ته زيان رسوي.





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دمخامخ چوکاټ ورته کلمې یوه له بلې سره ونښلوي.

| | |
|---|---|
| شخړه | لانجه |
| زغم | غوره |
| خبري | خبري |
| لانجه | زغم |
| غوره | شخړه |

- زده کوونکي دې لاندې نیمګړې کلمې بشپړې کړي او یوبل ته یې وښیي.










- ښوونکی دې دزغم دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي او زده کوونکو ته دې معلومات ورکړي چې له زغم څخه په کوم وخت کې کار واخلي. او په دې باب دې مثالونه ورکړي او له زده کوونکو څخه دې هم دمثالونو غوښتنه وکړي.



کورنی دنده



زغم

لانجه په شخړه نه ارزي.



ددې لوست هدف زده کوونکو ته دوخت اوخپل مسوولیت پېژندنه اوپه دوې کې دخپلواکۍ دروحیې پیداکول دي.

پوښتنې:

۱- هره ورځ تاسې څه کارونه کوئ؟

۲- تاسې لوبې په کوم وخت کې کوئ؟

۳- تاسې کوم ښه کارونه کولای شئ؟

۴- تاسې له چاسره ښه کار کړی دی؟

# ښه ماشومان

ښه ماشومان دهر کارله پاره ټاکلی وخت لري. دوی پخپل وخت ښوونځي ته ځي او دکورپه کارونو کې مرسته کوي. همدارنګه په ټاکلي وخت لوبې کوي او په لوبوکې چاته زیان نه رسوي. ښه ماشومان دټولو خلکو درناوی کوي او له هرچاسره ښې اړیکې ساتي.





- زده کوونکي دې په خپل ګروپ کې په مشوره خانو ته یوه- یوه دنده ورکړي چې د ټولګي او ښوونځي په نظم او ساتنه کې ونډه واخلي. دمثال په توګه: په ټولګي کې د کاغذو ټولول، د تختې پاکول، د چوکیو او مېزونو ترتیب او داسې نور.

- زده کوونکي دې دغه نیمګړې کلمې بشپړې کړي او په خپلو کتابچو کې ولیکي.










- ښوونکی دې د (ښه ماشومان) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي. ټینګار دې وباسي چې زده کوونکي دوخت ورښلو او دخپلو مسوولیتونو پېژندلو ته وهڅوي.

ښوونکی دې زده کوونکو ته ور په یاد کړي چې لاندې تمرین په کور کې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



کورنۍ دنده



وخت

دهر کار له پاره ټاکلی وخت وټاکلئ.



ددې لوست هدف دادئ چې زده کوونکي په ژوند کې داوبو په ارزښت او اهمیت پوه شي او دنويو کلمو ليکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱ - څوک چې ناپاکې اوبه وڅښي په کومو ناروغيو اخته کيږي؟

۲ - اوبه کروندو اوبوټو ته څه ګټه لري؟

۳ - مور ولې خپل لاس، خوله ،مخ او ټول ځان په پاکو اوبو مينځو؟

۴ - آيا ټولې اوبه پاکې دي؟

# اوبه او ژوند

اوبه زموږ ژوند ته ډېرې ګټورې دي. که اوبه نه وای ژوند به نه و. بوټي، ونی او انسانان په اوبو ژوندي دي. په اوبوپټې اوکروندې خړوبيږي، غلې،دانې،سابه او مېوې په اوبو شنې کيږي. زه خپل لاسونه اومخ په پاکو اوبو مينځم. په پاکو اوبو کې لامبم او تل پاکې اوبه څښم. ددې ګټه داده چې ناروغه نه شم.





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دلاندې چوکاټ دتورو څخه کلمې جوړې کړي.

| |
|---|
| ژ – و – ن – د |
| ا – و – ب – ه |
| م – ې – و – ې |
| س – ی – ن - د |

اوبه — آبادي ده.
اوبه — ژوند دی.
اوبه — سمسورتیا ده
اوبه — ښکلا ده.
اوبه — غلې دانې راولي.







- ښوونکی دې د(اوبه اوژوند) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته ووایي چې (که اوبه نه وي نو ژوند هم نشته) او مثالونه دې ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته دپاکو اوناپاکو اوبو په ګوته کړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو ووېشي چې دپاسنی تمرین چې د(اوبه) په نیمګړي عبارت سره پیل کیږي بشپړې جملې دې جوړې کړي.



کورنۍ دنده



اوبه

انسانان په اوبو ژوندي دي.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د لمر د ګټو په ارزښت پوه شي او د نويو کلمو ليکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱- غلې او دانې په څه شي پخېږي؟

۲- لمر څه وخت راخيږي؟

۳- لمر څه وخت لوېږي؟

# لمر

زموږ هېواد ډېر ځلانده لمر لري.

لمر ساړه لرې کوي او تودوخه راولي.

لمر ټولو ونو، بوټو او ساوتو ژوند وربښي.

لمر تيارې رڼا کوي.

# ټ



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(ټ)دتوري نوم، بڼه اوغږ وپيژني او وليکي.

پوښتنې:

۱- دټال څخه پرته نور څه شيان په رسم کې وينې؟

۲- دختيک بل بوټ څه شو؟

۳- تاسې کله په ټال کې زنګيدلي ياست او که زنګيدلي يئ څه احساس مو کاوه؟


کټ


بوټ


بوټان

## ټال

خاټول په ټال کې زانګي.

ختيک دخاټولي ورور دی.

دختيک يو بوټ غټ دی.

| |
|---|
| خـ - ټک |
| ټال |
| غـ - ټ |

ختيک

ټال

غټ





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دمخامخ چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي او په خپلو کتابچو کې يې وليکي.

| |
|---|
| ل – م – ر |
| خ – ل – ا – ن – د – ه |
| ت – و – د |
| س – ا – ړ – ه |
| ت – ی – ا – ر – ه |








- ښوونکی دې د(لمر) دلوست متن زده کوونکو ته تدريس او دوی ته دې دګټو او ارزښت په هکله معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي چې دپاسني تمرين چې د(ل) په توري پيــــل شوي، نيمګړي کلمې بشپړې کړي.



تمرين

لمر

لمر ساړه لېرې کوي.



ددې لوست هدف دادې چې زده کوونکي د روغتیا په ارزښت او دهغې په ساتنه پوه شي او دنویو کلمو لوستل او لیکل زده کړي.

پوښتنې:

۱- سپورت څه ته وایې؟

۲- آیا دتاسې په کور کې څوک سپورت کوي؟

۳- نجونې او هلکان پرته له سپورت څخه د روغتیا دساتنې لپاره نورڅه کولاي شي؟

# روغ سړی

روغ سړی چې هرسهار له خوبه پاڅیږي سپورت کوي. هغه په ورو ورو خبرو ځان نه خپه کوي او کوښښ کوي چې په ژوند کې خوشاله وي. روغ سړی نه یوازې چې خپل ځان بلکې خپل چاپیریال هم پاک اوسوتره ساتي. روغ سړی تل سابه، مېوې او نور خوراکي شیان په اوبو پاک مینځي اوبیایې خوري. پاکوالی روغتیا ته ډېره ګټه لري.



- زده کوونکي دې په ګډه سپورټي حرکتونه په عملي توګه سرته ورسـوي. بيـادې دې دلن ليک تمرين پخپلو کتابچو کې په کور کې وليکي.



- ښوونکی دې د(روغ سړی) دلوست متن زده کوونکو ته تدريس کـړي او دوی تـه دې دروغتيا دساتنې په هکله معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې له زده کوونکوڅخه پوښتنه وکړي چې دروغتيا دساتنې لپاره نورڅه کارونه بايد وکړو. (دمثال په ډول خپل خان ، کور اوکالي پاک ساتل) .

تمرين



روغتيا

روغ سړی هروخت خوشاله وي.



ددې لوست هدف دادې چې زده کوونکو ته دمخدره موادو او نورو بدو عملونو وروپیژندل او دونویو کلمو لیکل او لوستل دي.

پوښتنې:

۱- مخدره مواد ولې بد دي؟

۲- څوک چې چلم او نسوار کاروي دهغوی دخولې څنګه بوی لګیږي؟

۳- بد عملونه نورڅه زیانونه لري؟

# بد کارونه

سګرټ، نسوار، چرس او دنورو نشه یي موادو کارول روغتیا ته زیان رسوي.

کله –کله داسې بد عملونه دانسان دمرګ سبب هم کیږي. بد عملونه اقتصاد ته هم زیان رسوي. له بدو کارونو څخه ډډه کول دخدای(ج) امر هم دی.





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپو کې دمخامخ چوکاټ له تورو څخه کلمې جوړې کړي.
- زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې په کورکې ولیکی.

| |
|---|
| س – ګ – ر – ت |
| ن – س – و – ا – ر |
| ت – ا – و – ا – ن |
| چ – ر – س |










- ښوونکی دې د(بدکارونه) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي. بیادې دوی تـه دمخدره موادو دزیانونو په هکله معلومات ورکړي او زیار د ې وباسي چې ددامې عملونـو څخه دزده کوونکو کرکه راوپاروی.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو ووېشي ترڅو پاسني تمرین چې د(بد) په نیمګـړې کلمې سره پیل کیږي، بشپړې کړي.



تمرین



تاوان

بد عملونه روغتیا ته تاوان رسوي.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي داورلګیت په خطرونو پوی کړای شي.

پوښتني:

۱- په پورتني رسم کې څه وینې؟

۲- پرته له اورلګیت څخه نور دکومو شیانو سره لوبې کول خطر لري؟

۳- که چېری کوم شی اور واخلي تاسې باید څه وکړی؟

# اورلګیت

ګلنارې! ګل اندامه وګوره!

ګل اندامه اورلګیت ته نږدې کیږي.

ګل اندامې! له اورلګیت څخه لرې ګرځه،

ځکه چې اورلګیت اودلوبوشی نه دی اوخطرلري.





- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې ددغه چوکاټ ورته کلمې يوه له بلې سره ونښلوي مثال درکړل شوی دی.

| | |
|---|---|
| اورلګيت | ليرې |
| خطر | اور |
| اور | ګل ناره |
| ګل ناره | خطر |
| ليرې | اورلګيت |

- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وويشي ترڅو دورکړل شوي تمرين نيمګړې کلمې دې بشپړې کړي.










- ښوونکی دې د(اورلګيت) دلوست متن زده کوونکو ته تدريس کړي او دهغه دسمو او ناسمو کارولو په هکله دې معلومات ورکړي.
- ښوونکی بايد ماشومانو ته په ټينګار ووايي چې داورلګيت دکارولو څخه ډډه وکړي او دارتيا په وخت کې دلويانو څخه مرسته وغواړي.

کورنی دنده



اورلګيت

داورلګيت څخه خطر پيداکيږي.



ددې لوست هدف دادئ چې زده کوونکي دنويو کلمو لوستل او ليکل زده کړي اودزړښت دمفهوم سره آشنا شي.

پوښتنې:

۱- په رسم کې څه وينئ خبرې پرې وکړئ؟

۲- زوړ سړی ولې کړوپ کړوپ په لاره ځي؟

۳- سپين ږيري رښتيا په ځواني پسې لټه کوله؟

# ځواني لټوم

يوسپين ږيری، ټيټ، ټيټ، په لاره روان و، شايې کړوپه وه. يوهلک په مخه ورغـــئ، پوښتنه يې ترې وکړه، باباجانه څه لټوې؟

ده ورته وويل، "چې ځواني لټوم ځواني!!!"





- زده کوونکي دې په ټولګي کې اویا دباندې په یوه کړۍ کې سره کېني دهر چاچې په زړه پورې کیسې زده وي په نوبت سره دې نورو ټولګیوالوته ووایي.
- زده کوونکي دې دلن لیک تمرین پخپلو کتابچو کې ولیکي.







- ښوونکی دې د(خواني لټوم) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس او دانساني عمر ددورو په باب دې معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ټولګي کې اویا دباندې کیسو ویلو ته وهڅوي.



کورنی دنده



ځواني

بابا ځواني لټوي.



ددې لوست هدف دادئ چې ۱- زده کوونکي دکیسو په مرسته دنویو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.
۲ - دانا اولمسیانو ترمینځ دخوږو اړیکو پیژندل دي.

پوښتنې:

۱- ستاسې انا له تاسو سره په خپل کور کې اوسیږي؟

۲- ستاسو انا له تاسو سره څه کوي؟

۳- دانا دخولې یوه کیسه موږ ته ووایئ؟

# انا

زمری چې ډېر کوچنی و، دخپلې اناڅخه یې پوښتنه وکړه: رښتیا ووایه، څومره موده کیږي چې ته زما انا یې؟ انا خپل لمسي ته وکتل او ورته یې وویل: له هغه ورځې نه چې ته دې دنیاته راغلی یې. زمري وویل: که چېرې زه نه وای راغلی ته زما انا نه کېدې؟ ښه نو اوس څه شی راکوې چې ته مې انا کړې یې.





- زده کوونکي دې د(ټيک، ټال اوغټ) کلمې دمخکې پاڼې دجوکاټ دکلمو په څېرڅېر باندې کار وکړي.

- زده کوونکي دې دلاندې تمرين له نیمګړو کلمو څخه چې د(ټ) په توري پیل شوي دي بشپړې کلمې ج وړې کړي؟










دښوونکي لارښوونه :

- ښوونکی دې لوست په پوښتنو پیل کړي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي. وروسته دې د(ټ) توري درسمونو دکلمو په پیل، منځ اوپای کې زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي. بیادې د(ټ) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو سره تکرار او د(ټ) دتوري متن دې هم تدریس کړي.






ټـ ټـ ټـ ټ ټ ټ ټ ټ





- زده کوونکي دې په ټولګي کې اويا دبالدې په يوه کړي. کې سره کېنې دهرچا چې دانـا اويا نورې په زړه پورې کيسې زده وې په نوبت سره دې نوروته ووايي.
- زده کوونکي دې دلن ليک تمرين پخپلو کتابچو کې وليکي.







- ښوونکی دې د(انا) دلوست متن زده کوونکو ته تدريس کړي او دکيسې موخـه دې تشريح کړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي دکيسو ويلو او اوريدلو ته وهڅوي.
- ښوونکی دې دلن ليک تمرين په زده کوونکو باندې کار وکړي.



کورنی دنده



انا

انا ماته کيسې کوي.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي په دې پوه شي چې ټول خلک ددرناوي وړ دي.

پوښتنې:

۱- تاسې دخلکو څه ډول درناوی کوئ؟

۲- درناوی چاته باید وشي؟

۳- ستاسو له نظره کوم کارونه ښه دي؟

# درناوی کول

ټول انسانان که ښځه دي او که نارینه، که سپین ږیري وي او که ځوانان اویا ماشومان ، ددرناوي وړ دي. ښه ماشومان دټولو خلکو درناوی کوي. په هر کارکې نوبت مراعات کوي. دسپین ږیرو مخ ته نه ځي. دچاپه خبروکې نه لویږي. او دوی تل دهرچا سره ښه چلند لري.



- زده کوونکي دې په نوبت سره دټولګي مخ ته راشي او زده کوونکو ته دې په دې هکله چې، دوی څه ډول اوچا ته درناوی کوي ، خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.



- ښوونکی دې د(درناوي کول) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي .
- ښوونکی دې زده کوونکو ته ددرناوي په هکله معلومات اومثالونه ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي چې دټولګي مخې ته راشي او خپلــو ټولګیوالوتــه دې ووایي: څوک ددرناوي وړ دي چې درناوی یې وکوو او دخپلو درناوی کولــو مثالونــه دې راوړي .

کورني دنده



درناوی

ټول انسانان ددرناوي وړ دي.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي ددوستي او دملګرتیا په ارزښت دنویو کلمو لیکل او لوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱- تاسې دوستان لرئ؟

۲- آیا تاسې له چاسره مرسته کړې ده، که مو کړې ده، څه ډول؟

۳- ددوست درلودل څه ګټې لري؟

# دوستي او ملګرتیا

توریالی دزمرک ښه ملګری دی. دوی همېشه یو دبل سره مرسته کوي. کله چې یو خپـــه وي نودخپل زړه حال بل ته وایي. زمرک دتصمیم نیولو څخه مخکې دخپل ملګري سره مـــشوره کوي. دوی همېشه یودبل سره لوبې او ساعت تېری هم کوي.



- زده کوونکي دې پخپلو ګروپونو کې په نوبت سره دخپلو دوستانو او ملګرو دښو کـړو وړو په هکله خبرې وکړي.
- زده کوونکي دې دلن لیک تمرین پخپلو کتابچو کې ولیکي.






- ښوونکی دې د(دوستي اوملګرتیا) دلوست مـتن زده کوونکـو تـه تـدریس کـړي او زده کوونکو ته دې ددوستی اوملګرتیا داړتیا او ارزښت په هکله معلومات اومثالونه ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي، پورتني تمرین چې د(ماشو) پـه نیمګـړي کلمه پیل کیږي بشپړ کړي.

کرښې دنده



دوستي

توریالی دزمرک سره ملګری دی.



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي دروغې جوړې په ارزښت اواړتیا پوه شي او دنوبوکلمو لیکل اولوستل زده کړي.

پوښتنې:

۱- پخلاینه څه ته وايي؟

۲- د مرورو کسانو پخلاتوب يې تاسو ليدلی دی؟

۳- آيا تاسو کوم وخت له چاسره لانجه کړې ده؟

۴- آيا تاسو کوم څوک پخلا کړی دي؟

# روغه جوړه

کله چې دماشومانو ترمنځ لانجه پيداشـــي، بيادوی له يوبل سره لوبې اوخبرې نه کوي.

مرور ماشومان بايد دملګرو په مرسته ســـره پخلا شي. ترڅو خپلو لوبو ته دوام ورکړي.



- زده کوونکي دې پخپلو ګروپونو کې د(روغې جوړې) په هکله کیسې وکړي، دمثال په توګه : دوی دچاسره په څه شي شخړه کړې ده. او بیا څه ډول پخلا شوي دي؟
- زده کوونکي دې په خپل کور کې دلن لیک تمرین په خپلو کتابچو کې ولیکي.



- ښوونکی دې د(روغه جوړه) دلوست متن زده کوونکو ته تدریس کړي او بیادې دروغې جوړې داهمیت په هکله دوی ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې ددرس دلن لیک تمرین دوی پخپلو کتابچو کې ولیکي..

کورنی دنده



روغه جوړه

ماشومان تل یودبل سره روغه جوړه کوي.



ددې لوست هدف دادې چې زده کوونکي سره مينه پيداکړي او ښې ساتنې ته وهڅول شي.

پوښتنې:

۱- ولې کتاب ستاسې ښه ملګرى دى؟

۲- ددې کتاب څخه مو څه شيان زده کړي دي؟

۳- پدې کتاب کې مو کوم شيان خوش دي؟

۴- کتاب بايد څه ډول وساتل شي؟

# کتاب

نوم زما کتاب دى — تاته مې خطاب دى

زه ستا ښه آشنا يمه — تاته کيسې وايمه

څومره ښې کيسې لرم — شاتو نه خوږې لرم

مشق دې دليکونو يم — هم دې دلوستلو يم

پام مې په ساتلو کړه — په پاڼو اړولو کړه

پاک مې له ګردونو کړه — پام مې په رسمونو کړه

ښکلى مې هر باب دى

نوم زما کتاب دى

"محمد عثمان نژند"




- زده کوونکي دې په خپلو ګروپونو کې دکتاب په هکله یوه- یوه جمله ولیکي او بیــادې دخپل ګروپ جملې په یوه پاڼه کې ولیکي او دټولګي په مخ کې یې دې ولولي. هر ګروپ دې داکار په نوبت سره سرته ورسوي.
- زده کوونکي دې دلن لیک تمرین پخپلو کتابچو کې ولیکي.

ک — تاب، تابونه، تار، تارونه، ور، ورونه






- ښوونکی دې ددې لوست متن زده کوونکو ته تدریس کــړي او زده کوونکــو تــه دې دکتاب دګټو په هکله معلومات ورکړي.
- ښوونکی دې زده کوونکي په ګروپونو وویشي ترڅو په ګډه پورتني تمرین چــې د(ک) پــه توري پیل شوی دی نیمګړې کلمې دې بشپړې کړي.
- ښوونکی دې زیار وباسي چې هر زده کوونکی دخپل احساس له مخې دکتاب په هکله جملې ولیکي.






کتاب

کتاب زموږ ملګری دی.

# دهیلۍ بدشکله بچی

دهیلۍ او دهغې بچیان سترګې په لاره وو، چې له هګۍ څخه یوبل بچی راووزي.



# ث



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(ث) دتورې نوم، ښه اوغږ وپېژني او ولیکي










پوښتنې:

۱- په رسم کې څه شیان وینې خبرې پرې وکړئ؟

۲- آیا تاسې باغچه لرئ او په خپله باغچه کې څه کرئ؟

۳- باران څه ګټې لري؟

۴ - ثور دکال څوومه میاشت ده؟

# ثور

| |
|---|
| ثر - یا |
| ثو – ر |
| کو - ثر |

ثریا

ثور

کوثر

ثور دپسرلي دوه یمه میاشت ده.

په ثورکې ګلان شنه کیږي.

کوثر په باغچه کې ګلان لري.

کله چې وروستی بچی له هګۍ څخه راووت، دهغی رنګ خړ او له نوروبچیانو څخه لوی و.





مورته خړ بچي دنورو په شان ګران و،

ولې نوروبچيانوته داخړ بچی چې دهغو

په شان نه و، ګران نه و، ځوراوه بــه

يې. او ويل يې چې هغه بدرنګه دی.



خړ بچې دهغوى له لاسه ډېر په تنګ وُ او له کوره لرې ولاړ. هغه، هلته يوازې شو او ډارېده. هغه په خپل كـور او خپلوانو پسې خپه شوی وُ.



هوا سړېدله،یوه ورځ یې ولیدل، چــې
لوی الوتونکي دده دسرله پاسه الـــوزي.
هغه الوتونکي ډېر ښکلي وو. کـــوچني
بچي وویل، کاشکې زه بدرنګه نه وای.



په پسرلي کې هغه، همغه ښکلي

الوتونکي بیاهم ولیدل. داځلی هغوی

دده مخې ته راکوز شول او ورته وې

ویل: چې ته زموږ په شان یوه هیلۍ یې.



لومړی ده باورنه کاوه. خوکله، چې يې
ترخپلو پښولاندې اوبوکې وکتل، خپله
څېره يې ولیده پوه شـــو چـــې دا یـــوه
بدرنګه هیلۍ نه ده، بلکې هغه نوره غټه
شوې ده اودیوې ښکلې هیلۍ په څېر.

# دپوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

وطن زما بې ځان له تانه شم قربان
ته وينه دافغان ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

آباد اوسې آباد وطنه ته شې ښاد
مونږه سربښندو په تا اوسې تل دې آزاد

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته کور بې هم مې ګور ته پلارېې هم مې مور
ته زړه دآسيا او زما دستر ګو تور

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته ننګ بې دآريا او تاج بې ديما
خاربږمه له تا افغانستان زما

پوهنه ده رڼا،وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما







زده کوونکي دې د(ث) دتوري، غږ، په بوازې او گروپي توگه ادا کړي .

- زده کوونکي دې د(ثریا، ثوراو کوثر) دمخکني پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په بانديې کـــار وکړي.

- زده کوونکي دې دچوکاټ له مخې دتورو څخه کلمې جوړې کړي.

| | |
|---|---|
| ور | ث |
| | ریا |







- ښوونکی دې لوست په پوښتنو پیل کړي او دا کار دې ددرسونو ترپایه پورې په پام کې ونیسي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې پر رسمونو باندې خبرې وکړي. وروسته دې ښوونکی په رسمونو باندې پوره رڼا واچوي. په هغه رسمونوکې چې کلمې يې په (ث) پیل شـــوې دې د(ث) توری دې زده کوونکو ته ورپه گوته کړي.

- ښوونکی دې بیا د(ث) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو ته ور زده کـــړي. او دلوســـت دهدف له مخې دې د(ث) دتوري متن تدریس کړي..

- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د(ث) دتوري نه په مختلفو سمتونو کلمه جوړه کړي لکه: د(ث) دتوري څخه مخ بڼکه (ثریا) او دچپ لورته د(ثور) او داسې نور.

- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې ددرس په پای کې ورکړ شوی تمرین په کـــور کې کار وکړي



کورنۍ دنده



ثـ ـثـ ـثـ ـثـ ث ث ث ث

# ج



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(ث) دتوري نوم، بڼه اوغږ وپيژني او وليکي.









جال

**پوښتنې:**

۱- تاسې کله جاله ليدلې ده؟

۲- له جالې څخه څه کار اخيستل کيږي؟

۳- داوښ څخه څه کار اخيستل کيږي؟

# جاله وان

| |
|---|
| جا- له - وان |
| ســ – راج |
| جا – له |
| جون - ګي |

جاله وان

سراج

جاله

جونګی

## دا جاله ده.

## سراج جاله وان دی.

## جاله له ژيو څخه جوړيږي؟



زده کوونکي دې د(جاله وان، سراج، جاله او جونګي) دمخکني پاڼي دچوکاټ دکلمو په څير په څپو باندې کا رو کړي.

زده کوونکي دې دچوکاټ له مخې د(ج) له توري څخه کلمې جوړې کړي.

| | |
|---|---|
| | اله |
| اله | ج |
| | اله وان |



- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې درسمونو په باب خبرې وکړي، او زده کوونکو ته دې د(جالې) او د(اوښ) دکار اخيستلو په هکله معلومات ورکړي . زده کوونکو ته دې داور په ګوته کړي چې (اوښ) او(جاله) دواړه دوړلو، راوړلو وسيلې دي. وروسته دې د(ج) دتوري نوم، غږ ، بڼه او ليکل زده کوونکو ته ور زده او د(ج) دتوري متن دې تدريس کړي.

- ښوونکی دې د(ج) توری په رسمونو کې زده کوونکو ته ور په ګوته کړي.

- ښوونکی دې په زده کوونکوباندې د(ج) دتوري نه (لکه په ورکړل شوي چوکاټ کې) کلمې جوړې کړي.

کورنۍ دنده



جـ جـ جـ جـ ج ج ج ج



# ح

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(ح ) دتوري نوم، بڼه اوغږ وپېژني او ولیکي.



حلوا



حوض



حلاجي

پوښتنې:

۱- په پورته رسم کې څه وينې؟

۲- حاجیان په مکه معظمه کې څه کوي؟

۳- ستاسي له کلي څخه څو تنه حج ته تللي دي؟

۴- حج په چا فرض دی؟

## حج

| |
|---|
| حلـ – وا |
| حو - ض |
| حلا – جي |

ذبیح حج ته ځي .

دجمال کاکا، حاجی دی.

حج کول فرض دی.

حلوا

حوض

حلاجي





- زده کوونکي دې د(حلوا، حوض او حلاجي) دمخکني پاڼې دچوکاټ په څېر دکلمو په څېر باندې کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نيمګړو کلمو څخه چې د(ح) په توری پيل شوي دي بشپړې کلمې جوړې کړي.










- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي اودرسمونو هغه کلمې چې د(ح) په توري پيل شوي دي.زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي.
- ښوونکی دې بيا د(ح) دتوري نوم، غږ، بڼه او ليکل زده کوونکو ته ور زده کړي او دلوست دهدف له مخې د(ح) دتوري متن تدريس کړي.



کورنۍ دنده



حـ حـ حـ حـ ح ح ح ح



خ

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(خ ) دتوري نوم، بڼه اوغږ وپېژني او وليکي.


خياط

**پوښتنې:**

۱- تاسو دکوچيانو خېمې ليدلي دي؟

۲- کوچيان ولې له يوه ځای څخه بل ځای ته ځي؟

۳- کوچيان کوم حيوانات ساتي؟


خربوزه


دخرما ونه

# خېمه

## کوچيان خېمې لري.

## په خېمو کې ژوند کوي.

## اختر په خره بار وړي.

| |
|---|
| خېــ – مه |
| په – خــ - وي |
| ت - ريخ |

خېمه

پخوي

تريخ

# ا



| |
|---|
| ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(ا)دتوري نوم، بڼه، غږ او ليکل زده کړي. |

پوښتنې:

۱-په پورتني رسم کې څه وينې؟

۲- مور چا پيدا کړي يو؟

۳- د الف، شکل څه شي ته ورته دی؟

۴- داسی نوموونه پيداکړئ چې لومړی توری يې الف وي؟










الله (ج)

| |
|---|
| ا - لله |

الله (ج) يـــو دی .

الله

مور د الله (ج) بنده ګان يو .




- زده کوونکي دې د(خیمه، پخوي اوتریخ) دمخکني پاڼي دچوکاټ دکلمو په څېر پــه ښېوکاروکړي.

- زده کوونکي دې دلاندې تمرین له نیمګړو کلمو څخه چې د(خ) په توري پیل شوي دي بشپړې کلمې ترې جوړې کړي.









- ښوونکی دې درس په پوښتنو پیل کړي.

- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي وروسته دې د(خ) توری درسمونو په کلمو کې زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي.

- ښوونکی دې بیا د(خ) دتوري نوم ، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکــو تــه ور زده او د(خ) دتوري متن دې تدریس کړي.

- ښوونکی دې د(خ) توری دکلمو په منځ اویا په پــای کــې لکــه (پخــوي اوتــریخ) زده کوونکوته ورپه ګوته کړي.



## تمرين



خـ خـ خـ خـ خـ خ خ خ خ خ



# چ

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(چ )دتوري نوم، بڼه او غږ وپېژني اوهم يې وليکي.


مچی

پوښتنې:

۱- آیا تاسې دچار مغز ونه لیدلې ده؟ که مولیدلې وي چیرې؟

۲- تاسې څو ډوله چارمغز پیژنئ؟

۳- شات دڅه شي څخه لاس ته راځي؟


چتري


چاینکه


مالوچ

# چارمغز

چـ – من
چار- مغز
کو- چی

چمن

چارمغز

کوچی

چمن چارمغز راوړل .

کوچی توت او چارمغز خوري.

چمن دمچیو له شاتو سره هم مینه لري.



- زده کوونکي دې د(چارمغز،چمن او کوچی) دمخکنی پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په څپو باندې کار وکړي.
- زده کوونکي دې د(چ) دتوري څخه دچوکاټ له مخې کلمې جوړې کړي.

| | |
|---|---|
| | ی جوشه |
| بک | چا |
| | لاک |



- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي. وروسته دې په رسمونوپوره رڼا واچوي. د(چ) توری دې د هغه رسمونوپه کلموکې چې د(چ) په توري پيل شوي اويا د(چ) توری يې په منځ کې راغلی وي، زده کوونکو ته ور په ګوته کړي. وروسته دې د(چ) دتوري نوم، غږ، بڼه او ليکل زده کوونکو ته ور زده کړي. او دلوست دهدف له مخې د(چ) دتوري متن تدريس کړي.
- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې ددرس په پای کې ورکړ شوی تمرين په کور کې کار وکړي او دادې په ټولو درسونو کې په پام کې ونيسي.

کورنی دنده



چـــ ـچـــ ـچـــ چ ـچ ـچ ـچ ـچ



# څ

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکی وکولای شي د(څ) دتوري نوم، بڼه او غږ وپېژني اوهم يې وليکي.


څمڅه


څاه


څپره




پوښتنې:

۱ - په پورتني رسم کې ښځه څه کوي؟

۲ - تاسې په کور کې څمڅه لرئ ؟

۳- بزګران څپره دڅه لپاره کاروي؟

## څرخی

| |
|---|
| څر – خه |
| ګل-څې-ره |
| لوم – څی |

څرخه

ګل څېره

لوم څی

زما مور، څرخی کوي.

څرخي ته، په لومڅي ناسته ده.

لومڅي دوړيو څخه جوړېږي.





- زده کوونکي دې د(څرخه، ګل څېره او لومڅی) دمخکي پاڼي دڅوکاټ دکلمو په څېر په څېو باندې کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نيمګړو کلمو څخه چې د(څ) په توري پيل شوي دي بـــشپړې کلمې جوړې کړي.










- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي او د(څ) دتوري متن دې تدريس کړي. بيادې د(څ) دتوري نوم، غږ، بڼه او ليکل زده کوونکو تـــه ور زده کړي. ښوونکی دې په توره تخته د څرخه، برېښ، لومڅی کلمې وليکي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې په دې کلمو کې د(څ) تر توري دايره وکاږي.






څـ څـ څـ څـ څـ څ څ څ څ څ څ



# څ

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي وکولای شي د(څ) دتوري نوم، بڼه اوغږ وپيژني اوهم يې وليکي.

پوښتنې:

۱ - آيا تاسې څنګل ليدلی دی؟

۲ - په څنګله کې کوم ، کوم شيان پيداکيږي؟

۳- په کوم موسم کې دونو پاڼې ژېړيږي؟



ځاله



ږمنځ



ځنځير

# څنګل

## دا څنګل دی.

| |
|---|
| څن – ګل |
| څـ - مـ -کې |
| ورځ |

## توريالی هره ورځ څنګله ته ځي.

څنګل

څمکې

ورځ

## ښځې اونارينه په څنګله کې پاڼې ټولوي.





- زده کوونکي دې دځنګل، ځمکې او ورځ دمځکنې پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په څېر کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نیمګړو کلمو څخه چې د(ځ) په توري پیل شوي دي، بشپړې کلمې جوړې کړي.








- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي. وروسته دې د(ځ) دتوري، درسمونو د کلمو په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي. بیادې د(ځ) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو ته ور زده او د(ځ) دتوري متن دې هم تدریس کړي.
- ښوونکی دې د(ورځ، ځنګل، ښځه) او داسې نورې کلمې په تخته ولیکي او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي چې دټولګي مخ ته راشي او پرتختې لیکل شویو کلمو کې دې د(ځ) له توري دایره وکاږي.

کورنۍ دنده



ځـ ځـ ځـ ځـ ځ ځ ځ ځ ځ

# د



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(د) دتوري نوم، بڼه اوغږ وپېژندلای اوهم یې ولیکلای شي.



دستکول



رود



دروازه

پوښتنې:

۱- په دوکان کې څه شیان خرڅیږي؟

۲- ددوکان څخه دخپلې خوښې کوم شیان اخلی؟

۳- پرته له دوکان څخه نور په کوم ځایونو کې سودا اخلی؟

## دوکان

ودود دوکان لري .

| |
|---|
| دو — کان |
| دا - دا |
| و - دود |

دوکان

دادا

ودود

په دوکان کې ، سودا خرڅوي.

داود له ودود سره مرسته کوي.





- زده کوونکي دې د(دوکان، ودود او دادا) کلمې دمخکې پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په څېو کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نیمګړو کلمو څخه چې د (د) په توري پیل شـوي ، بـشپړې کلمې جوړې کړي.










- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبـرې وکـړي. وروسته دې د(د) توری درسمونو په کلمو کې زده کوونکو ته ورپه ګوته کړي. بیـادې د(د) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو ته ورزده . او د(د) دتوري متن دې تدریس کړي.



کورنۍ دنده



د د د د د د د د د د د



# ډ

ددې لوست هدف دادی چې د(ډ) دتوري نوم، بڼه او غږ وپېژندلای شي اوهم یې ولیکلای شي.










**پوښتنې:**

۱- په پورته رسم کې څه شی وینئ؟

۲- آیا تاسې کوم وخت په ډنډ کې لامبیدلي یئ؟

۳- له ډنډ څخه څه ډول ګټې اخلئ؟

۴- پرته له ډنډ څخه نورله کومو ځایونو څخه اوبه په لاس راځي؟

## ډنډ

ډ — نډ
ډ - ول
ډو — ډۍ

ډنډ
ډول
ډوډۍ

مور په باغچه کې یو ډنډ لرو.

ماشومان په ډنډ کې لامبو وهي.

مورکله کله دډنډ په غاړه ډوډۍ هم خورو.





۱- زده کوونکي دې د(الف) غږ په یوازې او ګروپي توګه اداکړي.

۲-زده کوونکي دې دالله (ج) دمخکني پاڼې دچوکاټ دکلمې په څېر کار وکړي.

۳-زده کوونکي دې د(الف) دتوري شکل په هوا کې په ګوته رسم کړي او دهغې آواز دې هم وکاږي.







۱- ښوونکی دې لوست په پوښتنو پیل کړي.

۲- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي، وروسته دې دلیمکړتیاو په صورت کې په رسمونو باندې رڼا واچوي. ښوونکی د ې زده کوونکوته هغه رسمونه چې په الف پیل شوی دي لکه : انا، انبور، اره، دالف توری دې راپه ګوته کړي. او وروسته دې دالف دتوري نوم، غږ، بڼه، او لیکل زده کوونکو ته ورزده کړي.

۳- ښوونکی دې په توره تخته د(انار، توت، اره، کلمې ولیکي او زده کوونکي دې په کلمو کې د(الف) تر توري دایره وکاږي او پدې ډول دې نوري کلمې هم کار وکړي. ښوونکي دې دلوست دهدف له مخې د(ا) دتوري متن تدریس کړی.

۴ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې ددرس په پای کې ورکړل شوی تمرین په کور کې کار کړي.



کورنۍ دنده



ا ا ا ا ا ا ا ا







- زده کوونکي دې د(ډ) دتوري شکل په هوا کې رسم کړي.
- زده کوونکي دې د(ډنډ، ډوډۍ او ډول) کلمې دمخکني پاڼي دچوکاټ دکلمو په څېر په څېـــر کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نيمګړو کلمو څخه چې د(ډ) په توري پيل شوي دي، بـــشپړې کلمې جوړې کړي.








- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکـــړي چـــې پـــه رســـمونو بانـــدې خبـــرې وکړي.وروسته دې د (ډ) توري، درسمونو دکلمو په پيل ، منځ او پای کې، زده کوونکو ته وريه ګوته کړي. بيادې د(ډ) دتوري نوم ، غږ، بڼه او ليکل زده کوونکو تـــه ور زده او د(ډ) دتوري متن دې تدريس کړي.










# ذ

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(ذ) دتوري بهه، نوم او غږ وپېژندلای او ولیکلای شي.


ذره بین


ذاکره


غذا

پوښتنې:

۱- په پورته رسم کې څه شی وینې؟

۲- ملا ولې آذان کوي؟

۳- ملا څو وخته آذان کوي؟

۴- ذره بین دڅه شي لپاره کارول کیږي؟

# آذان

| |
|---|
| ذا - کره |
| آ – ذان |
| کا – غذ |
| جا - ذب |

ذاکره

آذان

کاغذ

جاذب

ملا آذان کوي.

ذکي جومات ته ځي.

په جومات کې لمونځ کوي.




- زده کوونکي دې د(آذان، کاغذاو جاذب)کلمې دمخکني پاڼي دچوکاټ دکلمو په څېر په څو کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نيمګړو کلمو څخه چې د(ذ) په توري پيل شوي دي. بشپړې کلمې جوړې کړي.









- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي. وروسته دې د (ذ) توری، چې درسمونو دکلمو په پيل، مينځ اوپای کې راغلی وي، دوی ته ورپه ګوته کړي. بيادې د(ذ) دتوري نوم، غږ، بڼه او ليکل زده کوونکو ته ورزده او د(ذ) دتوري متن دې تدريس کړي.



کورنۍ دنده



ذ ذ ذ ذ ذ ذ ذ ذ





ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(ر)دتوري نوم، بڼه اوغږوپېژندلای او وليکلای شي.











غر

پوښتنې:

۱- په پورته رسم کې څه شی وينې؟

۲- درمې څخه څوک ساتنه کوي؟

۳- شپون دموسيقي کومه آله غږوي؟

۴- درمې څخه څه څه شيان لاسته راځي؟

# رمه

کوثر رمه لري.

رمه په غره کې پيايي،

له رمې څخه شيدې اخلي.

| |
|---|
| ر – مه |
| غر |
| با - زار |
| غرو - نه |

رمه

غر

بازار

غرونه





- زده کوونکي دې د(رمه، ټغر، بازار اوغرونه) کلمې دمخکني پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په څېر کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې نیمګړو کلمو څخه چې د(ر) په توري پیل شوي دي، بشپړې کلمې جوړې کړي.










- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو خبرې وکړي. وروسته دې د(ر) توري، درسمونودکلمو په پیل، منځ او پای کې، زده کوونکو ته ور په ګوته کـړي. بیادې د(ر) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو ته ور زده او د(ر) دتوري مـتن دې تدریس کړي.



کورنۍ دنده









ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(ړ) د توري نوم، بڼه اوغږ وپېژندلای شي او ولیکلای شي.


چاړه


لړم


کړکي

پوښتنې:

۱- تاسې څوک پېژنئ چې ړوند وي؟

۲- ړوند سړئ څه شیان کولای شي؟

۳- ړوند نوروته لارښوونه کولای شي؟

# ړوند

| |
|---|
| ړو — ند |
| زړ - کی |
| ســ- ړی |
| لــ - ړم |

ړوند

زړکی

سړی

لړم

دزړکي پلار ړوند دی.

دړانده سړه مرسته کول، ښه کار دی.

ړوند سړی اورېدل،لیکل اولوستل کولای شي.





- زده کوونکي دې د(ړوند، زړګی، سړی او لړم) کلمې دمخکښې پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر په څهو کار وکړي.
- زده کوونکي دې په تخته د(ولاړ، لړم، وړاندې، ړوند) په کلمو کې د(ړ)تر توري دايره وکاږي.







- ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو باندې خبرې وکړي، وروسته دې د(ړ) توری درسمونو دکلمو په پیل او منځ کې ورپه ګوته کړی. بیادې د(ړ) دتوري نوم، غږ، بڼه او لیکل زده کوونکو ته ور زده کړي او د(ړ) دتوري متن دې هم تدریس کړي.










# ز

ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(ز)دتوري، نوم، بڼه اوغږ وپېژندلای او ولیکلای شي.












زانگو

پوښتنې:

۱- تاسې ګاڼه پېژنئ؟

۲- ستاسې په کور کې څو ډوله ګاڼې شته؟ نومونه یې واخلئ.

۳- ګاڼې له څه شي څخه جوړېږي؟

# زرګر

زما زوی زرګر دی.

زمرک له زروڅخه ګاڼې جوړوي.

په ګردېز کې دکاکو دوکان لري.

| |
|---|
| زر – ګر |
| ګر - دیز |
| با - زار |

زرګر

ګردېز

بازار





- زده کوونکي دې د(ژ) دتورې شکل په آزاده هوا کې کار وکړي .
- زده کوونکي دې د(ژرگر، بازاراوگردېز) کلمې دمخکني پاڼې دچوکاټ دکلمو په څېر پــه څېر کار وکړي.
- زده کوونکي دې دلاندې تمرين له نيمگړو کلمو څخه چې د(ژ) په توري پيل شــوي دي بشپړې کلمې جوړې کړي.










ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په رسمونو خبرې وکړي. او وروسته دې د(ژ) توری درسمونو دکلمو په پيل، منځ او پای کې ورپه گوته کړي. بيادې د(ژ) دتــوري نوم، غږ،بڼه او ليکل زده کوونکو ته ور زده کړي. او د(ژ) دتوري متن دې هم تدريس کړي.






ژ ژ ژ ژ ژ ژ ژ ژ ژ

# ژ



ددې لوست هدف دادی چې زده کوونکي د(ژ) دتوري نوم، بڼه او غږ وپېژندلای او ولیکلای شي.


ژبه

پوښتنې:

۱- په پاسني رسم کې څه وینې؟

۲- آیا تاسي کله ژرندي ته تلي یاست؟که تللي یاست اوهلته موڅه لیدلي دي؟


غوژګو

# ژرنده

## نژند یوه ژرنده لري.

| |
|---|
| ژ - وند |
| ژبه |
| ژ- رنده |

## پژواک دنژند ملګري دي.

ژوند
ژبه
پژ-واك

## پژواک ژرندي ته نژدې اوسیږي.

